# نسرپرست

"د خلوص او اعتبار"
په نوم

انور حسين زرين





ليکوال ——— انور حسين زرين

د چاپ کال ——— ۱۹۸۷ء

کتابت ——— لطف الله کاتب سوېزي پليان

د چاپ ځای ——— نظورعام پرنټرز

قيمت ——— ۲۰ روپۍ

# سریزه

هسے خو زما ذرهٔ څه ډیرځهٔ یکل غواړی، ولے چه هغه ټول احساسات او کیفیات رِم مخے ته کیږی ـ کوم چه ما د دے غزلو او نظمونو د لیکلو په وخت او یا د هغے نه پس حس کړی ـ خو زهٔ به دا کوشش کوم ـ چه خبره رانه اوږده نهٔ شی ـ او چه څه ضروری دی ـ صرف د هغو بارے کښے څهٔ اوښیم ـ او هغه دا چه په دے مجموعے کښے شامل غزلے او نظمونه ما د سن ۱۹۷۲ء نه د سن ۱۹۸۴ء دوران یکلی ـ څه قطعے، رباعیانے او مرثیے وغیره رِم هم یکلی ـ خو ما ته دا موزونه نهٔ ښکاریده ـ چه دا هر څه یو ځائے چاپ کړم ـ ولے چه یا خو د دوی موضوع څه داسے وه ـ یعنے مذهب او یا بیا دا چه ډیر زیات مختصر وو ـ زما دا خیال دے ـ چه که ژوند وو ـ او په هم د غه موضوع رِم نور هم څه اولیکل ـ نو یو ځائے به ئے چاپ کړم ـ او تر کومے چه د دے مختصرو رباعیانو او نورو څیزونو تعلق دے ـ نو کیده شی ـ هغه کیفیت او احساس رِم بیا چرته راپیدا ر شی ـ د کمو په راتلو چه دوئ ما یکلی وو ـ او دغه شان څه مناسب شکل اختیار کړی ـ

اوس یو څو خبرے د دے مجموعے د ترتیب بارے کښے ـ او هغه دا چه د ټولو نه مخکښے ما هغه نظمونه او غزلے ورکړی ـ په کمو کښے چه یو خاص قسمه رومانی تأثر په نورو څیزونو حاوی شوے ـ او هم دا



هغه غزلے او نظمونه دی ـ کوم چه زما د ژوند د رنګینو لمحو ښودنه کوی ـ په منځ او یا په آخر کښے ما بیا هغه غزلے وغیره ورکړے ـ په کمو کښے چه دا څیز په کمه و شوے ـ

هسے خو د ډیرو غزلو او نظمونو سره ما ځائے او د لیکلو تاریخ ورکړے ـ او دا چه د دے لحاظ سره هم څه نه څه ترتیب ممکن وو ـ خو ما ته دا بل شان ښهٔ لګیده ـ یعنے د رومانی تاثر مطابق ـ د نورو موضوعاتو په خوا ز هٔ هسے هم ډیر کم راغلے یم ـ او خاص کر بیا تاریخونو ته خو زما د اول نه څهٔ خیال نهٔ وو ـ دا خو زما د یو ډیر ګران دوست خواهش وو چه زهٔ کله دا نظمونه او غزلے چاپ کوم ـ نو چه تاریخونه ضرور ورکړم ـ هم د هغے ورځے نه پس ما د هغو د خواهش خیال ساتلے ـ او د کمو غزلو دیک چه راته څه صحیح وختونه یاد نهٔ وو ـ نو دیک کال رِم ورکړے ـ ن په دے خبره زما زړهٔ ډیر مطمئن دے ـ چه کم از کم د هغو دا خواهش خو رِم پوره کړو ـ

او آخری خبره دا چه زهٔ د خپلو هغو ټولو ملګرو، چا چه زما په دے هر څه کښے حوصله افزائی کړے ـ او زما ئے اصلاح کړے ـ او د دے لحاظ سره زما استاذان دی ـ د زړهٔ د اخلاصه شکریه ادا کوم ـ

زهٔ د خپلو هغو دوستانو هم د زړهٔ د اخلاصه شکریه ادا کوم ـ چا چه د چل یا زما د زړهٔ د پاره زما ته دا مرځهٔ په مختلف موقعو اوریدلی ـ بیا په تیره د لطف الله کاتب چاپ د کتابت کار په ډیر اخلاص او حوصله سرته اورسوو ـ او په ځنے ځایونو کښے ئے زما د رسم الخط په لحاظ سره اصلاح هم کړے ده ـ مننه کوم ـ

انور حسین زرین
بټخیله (ملاکنډ)
۳۰-۹-۸۴



په قسم د تورو شپو
په یادونو لیونو

په دے سوو احساسونو
په دے ژوبلو ولولو

تورتمو سنه راخوارۀ شی
په ارمان دِ دلیدو

هسانی ژوندون م تیر کړو
یو په تاؤ د سرو لمبو



انتظار دِ ستړے ستړے
هر اقرار دِ د راتلو

ستا په عشق کښے م زړۀ راغے
اوښکه اوښکه په بنړو

---

شپه او ورځ یو وسواس
یم په غریو د تنهائی

دوارۀ سترګے م شوے اوچے
په احساس د جدائی .

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۵-۱۰-۸۵



لیونے شومہ دځان سره یکیا یم
دا د ځان خبرے ځان ته ځله وایم

چه هیڅ فرق له ما نهٔ شی ځان اوتاکښے
دا په ځان باندے مئین یم که په تا یم

که هزار ځله فنا شوم ستا په عشق کښے
داسے مهٔ ګڼړه چه ستا نه به جُدا یم



تهٔ ما چرته لتوے چه په شاکورے
راشه ستا په انتظار یمه زهٔ دا یم

بس یو تهٔ یے چه احساس راته رانه کے
نور دِ واړه عالم وائی چه په غلا یم

داسے مهٔ وایه" که دا مینه رسوا شی"
زهٔ به وے چا ته وایم چه د چا یم

داسے مهٔ وایه" که ستا ځنے جدا شوم"
تهٔ زما او زهٔ خو ستا د وجود ساه یم

تهٔ له ما مه خفه کیږه نور دیره
زهٔ له تا نه خفه نهٔ یمه پخلا یم

زهٔ دعشق له هره رازه خبردار یم
تهٔ به وئے زمانهٔ ئے چه زهٔ ستا یم

تهٔ ما وئے یو دے د مرگ د سوری
خاورے شوے چه دِعشق کښے له پخوا یم

زهٔ دا درست جهان هم ستا په ستر کو کورم
دا وفا ده که دِلبره په خطا یم

پاړه چنار ۸۵ - ۳ - ۲۳





لاس د مینے در کوم
لاس د مینے به را کے
زهٔ به تا نهٔ خفه کوم
تهٔ به ما نهٔ خفه کے

دوختونو په تیرو کښے
که جدا شو ډیو به له
زهٔ به تا نهٔ هیروم
تهٔ به ما نهٔ هیروے

څهٔ د عشق خیرے ھے
په بل رنګ شی یا په ژبه
زهٔ به تا په پوهوم
تهٔ به ما په پوهوے

که څوک شک درته په زړهٔ که
څهٔ دے پاک ھسے فطرت له
زهٔ به تا په خبروم
تهٔ به ما په خبر وے

که دا غوښته کړی هرڅومره
څوک زموږ په لمن پورے
زهٔ پروا به ئے نهٔ کوم
ته پروا به ئے نهٔ کوے



له ازله څه رواج دے
څهٔ د عشق د محفلونو
زهٔ به تا نهٔ ړنګوم
تهٔ به ما نهٔ ړنګوے

د فراق خبره ګرانه
چه جُدا نهٔ شے له مانه
کښی لاړ به ړِ سارمم
یاره لاړ به ړم سارے

تېول غموښته ړِ دابارکړه
کوره ښنګ ئے قبلوم
داسے خیال به ړِ ساتم
داسے خیال به ړم ساتے

بے له تا دی زما خوګ
بے له ما دی د تا خوګ
نور به خوګ نهٔ خپلوم
نور به خوګ نهٔ خپلوے

که له تا شوم خفه هسے
یا له ما شوے خفه هسے
زهٔ به تا پخلا کوم
تهٔ به ما پخلا کوے

زهٔ د سترګو کښے درګورم
تهٔ م سترګو کښے راګوره
زهٔ له تا نه نهٔ اړوم
تهٔ له ما به نهٔ اړوے

پېښور (پېښور یونیورسټي)

۹ - ۳ - ۸۲





یو ارمان م پیدا شوے دے په زړهٔ کښے
چه م خوب شی نه په سترګو نه یمه کښے

چه م هروخت هغه هغه په خُله وی
دا په خوُد کښے یم ملګرو که نشه کښے

بیا حرام شه که م سترګے وے ورغلے
چه ئے راغے تصوّر په توره شپه کښے

نور به ژوند زما احساس زېږېدلے نه وی
اوس هم مینه ده مګرسے ولوله کښې

چا به باغ د مینے ګل شی لرے نهٔ ده
د احساس قاصدے راغے شپه په شپه کښې

پېښور (پېښور یونیورسټی)
۲۹-۶-۸۹

~~*~~





په وصال د دواړو سترګو سے
توره شپه رڼا غرمه شی
دا سے خیال وی که هغه وی
چه ډېرایه رابښکاره شی

په سرور دیاره د مینے
هم لحظه نغمه شی
غلی غلی چه راګوری
تن وجدان هم لا نشه شی

چه په ځنګ دښکلی یار
احساسونه مې لمبه شی
نهٔ پوهیږم چه یم چرته
دغه هوش حواس مې خړه شی

اوښکې ویني مې بهیږی
چه یادونه ئې راپه زړهٔ شی
تن ملګرے د تیرو مې
یاد ذیارنه دمعوبنه شی

ګله ګله په تیرو کښې
چه تصویرئې راښکاره شی
تن وځان مې ورته دواړه
دوصال په ننداره شی



نهٔ ۲ یار به چرے راشی
نهٔ به صبر ددے زړهٔ شی
دا دعِشق قصّه تمامه
د ذرّین به زړه په خړه شی

پېښور (زرعی یونیورسټي)
۱۱-۲-۸۶



ډوندخو د ژوند ون د پاره ځان تيارول وي
دا لکه ژړا له ' په خندا اخځله ورکول وي

داشي په عمل کښې ، لکه ښبکل د زړګي ويښ
خو خوند چه د ګلو نو له چپل زړونو خوړل وي

آغه په معني کښې د ژوند ځلنده نقطے شي
خو داچه ستا د پاره د ازغو په څوکو تلل وي



احساس د مينے څه وي يو نسته وي د ځمار
په لاره د وفا کښے ، د ځپل ځانه ورکيدل وي

داچه رم رواني په مخ اوښکے شپه او ورځ وي
غم نه وي مڼکرو ' دا ياد ونه د ځاځپل وي

اوګوره خلوص مو زمونږ مينه ئے ابدي کړه
اوس که مونږ نه يو داستانونه به موتل وي

پيښور د پيښور يونيورسټي )
۸۴ - ۶ - ۲۳



وے ئې زۀ غوارم چه دلبره
تل په څنګ کښې درسره وے
يو لحظه دِ هم له سترګو
چه آشنا زۀ پناه نۀ وے

لکه هسے دَ لوګے
خوشبوئي له دے را تللے
زۀ شبنم وے د سحرے
په ګلشن دِ ورېدلے



وے ئې ما سره چه حله وے
ما له تا قربانولے
چه په ستا زړۀ خوشحالېږي
که وے زهر خوما ښکلے

خو افسوس دے چه دلبره
دا دنيا د بېلتون ځائے دے
دا خواږه زړونه جدا کړي
دا د زړۀ د چاودون ځائے دے

د هرخوږ نظر د پاره
د ازغو په څوکو تلل وي
په معنیٰ کښې يو کېدل
دلته ځان فنا ګول وي

پېښور (پېښور يونيورسټي)
۳-۹-۸۴

خځه که د دنیا په سترګو لږم مخ ناولے
ما لره اختر زما غم زما ژړا ده

زه به ستا په طمع په دنیا هم په عقبا یم
زما دځه په تا دغه زما چل شرم حیا ده

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۸۴-۷-۲۳







ما سره استوګنه ئے په ژوندم په قضا ده
هغه شیبه ستا دخلوص او د وفا ده

ستا نه خو زما یوه ذره هم ګیله نشته
لویه هغه ګیله خو زما پاتے له دنیا ده

دوه ساعته ژوند به د دنیا وي یا به نه وي
ښه ده چه راغونده زما لمن ترے په حیا ده



وے ځ خدائے مۀ که چه سترګے
په بل لور به اړوم زۀ
چه په ستا زړۀ زهیرېږی
مرګ دِ راشی چه ئے کوم زۀ

بے له تانه د زړۀ سره
په دنیا به څۀ کوم زۀ
آسحر دِ چرے سنۀ شی
چه به تاخفه کوم زۀ



ستا دهر نظر د پاره
په ازغو درله راځم زۀ
وے ځ داحق د پاکے مینے
د زړۀ سره اداکوم زۀ

دوفا هغه لوظونه
به آشنا څنګ هیروم زۀ
لکه باد به خپلے لارے
وے ځ وے بدلوم زۀ

له دنیا به غلے غلے
وے ځ زړه کښے دِ ساتم زۀ
تصوّر دِ راسره وی
که لحظه دِ هیروم زۀ

پیښور

(پیښور یونیورسټي)

۱۹۸۹ء



داسے دِ مخ وارِوُ ، بیاچه رانبکاره نهٔ شوے
مات دِ کرو لوظونه چل ، تېنګه په وعدهٔ نهٔ شوے

څنګه په محفل کښې ستا ، راز د محبت ساتم
څوکه تل په زړهٔ دِ ئے ، چرے راپه خُله نهٔ شوے

ماځو انتظار دَچا ، تللی د مودو کړو خو
اے د صبا ستوریه ، ته ولے اُودهٔ نهٔ شوے



چاوے له یو زړهٔ نهٔچه لاړه وه بل زړهٔ ته ځی
ته خویو ذړه آشنا ، په غم زما خفه نهٔ شوے

ماډِ هم ارمان چرے ، په ژوند باندے اونهٔ کړو بیا
ته چه دَ زړهٔ سره سم ، په دِاګه راسره نهٔ شوے

فارسټ کالج پېښور

۲۷ - ۷ - ۸۷



زهٔ خبر یمه دلبره
یوه ورځ به دا بے راشی
دا زما اوستا لاسونه
به تول عمر له جُدا شی

له هر خوا به دغم دکے
ټکے تورے لړے راشی
دا جهان به په ما تنګ
هم په تا تنګه دنیا شی



ته به غوارے هغه وخت
د وفا وعده له ما نه
زهٔ به غوارم هغه وخت
د وفا وعده له تا نه

خو افسوس دے چه له غمه
به ته هیڅ ویُلے نهٔ شے
نوی سوی احساسونه
به آشنا خو دے نهٔ شے

زهٔ به هم له ډیره غمه
در ته هیڅ ویُلے نهٔ شم
دغم ډکے سترګے پورته
ستا په لورنیولے نهٔ شم

تا به غم اوسی له ځانه
دا سې زړه به دې يرېږی
تېر وختونه به تول واړه
در ته سترګو کښې غړېږی

دا سې زه به هم له غمه
لکه بت وی دم ختلې
نا خبره د جهانه
د خپل ځانه لرې تلې

ته به ما لره راځې بیا
خو راتلې به بیا نه شې
د هجران آسره اوروته
به په زور وژلې نه شې



که ته غواړې چه ما هیر کړې
زه له تا به نه هیرېږم
د فراق په تورو شپو کښې
به دې سترګو کښې ځلېږم

زه خبر يم زه پوهېږم
ته به ما لپې ژړېږې
لکه ژل وهلې ونه
به ته ما لپې غځېږې

غلې غلې د دنیا نه
به د شپې ستورو ته ګورې
وړاندې وړاندې په تېرو کښې
به د زړه يم په هر لورې

داسې زۀ به هم له هجره
سوځې سوځې په سُراور
کله خوا دَ لیوبنو کښې
کله سرې سترګې نسکورې

دفطرت ځنې مجبوره
زۀ به ستا په غم کښې ژارم
دفراق دتور تمونو
به لیدنه ډِ تا غوارم

که دا واړه آسمانونه
یا عالمونه راسره وی
خو بیا بې دَ یوه ستا له
بل مرهم به زمونږ نۀ وی

پېښور (پېښور یونیورسټي)

۱۲-۹-۸۴





راشه خوا کښې زما کینه
هم دا وخت دمشغولا دے
هیروه ډِ کیلے واړه
په سفر ددنه آشنا دے

بیا به واخۍ ارمانۍ وو
زما بنګلے غم زپیلے
غم لړلے سوداګۍ وو
زما بنګلے غم زپیلے

دا چه تا لره سپرلی دی
دا چه تا لره ګلونه
دا به واړه بیا دلبره
شی ملال زړه له داغونه

دا چه هر طرف د ګوره
خوشالئ دی او سازونه
چه د زړه نه یم په څنګ
ګنړه دا سوی یادونه

دا ګلونه چه ته ګورے
دا ژمونږ په مینه ښائی
دا سرونه په هر لورے
دا ژمونږه زړونه وائی



دا چغار د مازیګرے
د مارغانو په څنګل کښے
دے ژمونږ د مینے استاذے
د مستئ مو په ګوګل کښے

چه پوښتے له د راشی
په طوفان او یا په ژلے کښے
نه به څوک درته بیا کیږدی
سرهٔ ګلونه په اوربل کښے

که هر څو بیا مینه غواړے
بیا خوږے خبرے څنګر کښے
دا سرور د ژوندانه بیا
چرے نهٔ راځی په سر کښے

دا زمونږ مینه پیدا کړی
چه دا خوسا وی شوا خون کښے
دا زمونږ مینه پیدا کړی
چه دا خوندوی په جنون کښے

چه دوه خوږ زړونه یو نهٔ شی
معنیٰ نهٔ را ځی ژوندون کښے
احساسات وی لسوی سوی
چه ئے قرار وی په ترون کښے

دغه ځان به زما نهٔ وی
که م سل په نخو ژاړے
سوے ځان به زمانهٔ وی
تماشه به دچا غواړے



—

زړهٔ به خورے هسے په غم دِ
چه وفا سره جفا دهٔ
خوک ملګرے به دِ نهٔ وی
خودغرضه چه دنیا دهٔ

پېښور (پېښور یونیورسټی)
۸۴ – ۸ – ۲۵





راشي نکه زوال چه په آسمان کښے يو برېښناوي
داسے م خاطر دِ علقه کله په جفاوي

ستا مره خبره له تا ميره شي چه اوشي
زړه يم چه اخته م زړه له مرګه په سوداوي

پرته چه دوه کسه په خندا م په خواتېرتي
وينم تصور کښے مرور چه يار له ماوي



سم دَ مازيګرے چه دَ ياد لړے دِ راشي
ساه م دوبه دوبه وايم چرته به آشناوي

داسے م زړه خوردے چه جُدا ئے دَ زړه سره
خاندي په ظاهره پټ دننه په غوغاوي

پيښور (پيښور يونيورسټي)
٢٤ - ٧ - ٨٤

—*—



تهٔ که زما نهٔ شوے
دا دنیا به بیا ویجاړه شی

خاورے به په زړهٔ کښے
ارمانونه زما واړه شی

نهٔ به دا سپرلے
نهٔ دا ګلونه وی



نهٔ به بهنوړا ګهان
نهٔ د بُلبلو آوازونه وی

نهٔ به دا نغمے
نهٔ دا سُرونه وی

ورکه خوشحالئ به شی
هرلوری به ویرونه وی

(پېښور یونیورسټي)
۱۴-۸-۸۵





چه ګله نه ئې زړهٔ خوږیږی زما
یادونه ستا په زړهٔ وریږی زما

مانه پرده محبوبې څهٔ له کوې
هسې خو هم ستر ګې شرمیږی زما

ستا د بې کچه مینې قدر راځې
اوس چې ظلمونه په زړهٔ کیږی زما

لا په فراق کښې م د زیات شو عمر
چې بې له تا نه نهٔ تیریږی زما

(کوهاټ)
۱۹۷۸ء





شپیلې راته جوړیږی
دسپوږمۍ په پلوشو کښې

بیا یادونه د راغلی
ژړوی م تورو شپو کښې

ایله پوه شوم په فراق کښې
ښهٔ وم خاورې د په پښو کښې

ژوندون څه بس انتظار شو
د فراق په سرو لمبو کښې

دایم دغه ده چې لاړه
ساه مې راشي په سلګو کښې

ستا په عشق کښې مې زړهٔ داغ
اوښکې وینې په ککو کښې

که هر څو ئې لټوومه
په جامونو میکدو کښې

آغه سُر د سرور نشته
په سازونو او نغمو کښې

(پېښور زړې یونیورسټۍ)
۲-۱-۸۶





غلې غلې داسې راشي د زړهٔ کورته
لکه غل د غلا دپاره پردي کورته

چه څهٔ غوارم هغه اوکړي بندهٔ خُله مې
حاجت نهٔ لرم په عشق کښې شروشورته

یو سرور، یوه نشه، یوه ښکلا وي
چه دا ځان کله د ځان څنې شي پورته

دغه کار زما دَعشق څهٔ نوے نهٔ وو
څهٔ حاجت وو په ماخوار پورے شُور ته

آخر بیله م دنیا شوه له دنیا نه
چه خبره د وفا لاړه پیغور ته

چه م ځ د عاشقۍ غمونه زیر که
تهٔ به ځ نیے دلبره د چالُور ته

(پېښور)
۲۱۹۸۳

~*~





بیا د مینے شراب راوړه
راشه سترګے په ما سرے که

راشه راشه بیا م پرېږده
په خپل یاد م لیونے که

زما مړ احساس د مینے
بیا په یو نظر ژوندے که

تیر وختونه زا په زړه که
د بنګلا بلے لمبے که

چه رم خوب و قرار داشی
داشه ورکے شوګیرسے که

پیښور (پیښور یونیورسټی)
۸۹-۸-۱

~★~





دا زما زړه ستا په عشق کښے دم ختلے
لکه تندر چه وی نمر هسے نیولے

دا زما مینه به ګل ګنی نو نه شی؟
ما دا الټی د ګلو چالسره ساتلے

دا جولئ د ښکلو ښکلو ارمانونو
لرے ترے له دنیا نه ورلے ورلے

داچه غلی راته واره په سحر دی
ما ګلونو ته د ګل قصه سپره ده

دا زما عالم دا اوښکو دا شمې شو
دا زما سترګې په وار به بهيدے

دا زما شونډے به چوړه خندا نهٔ که
ډېرا په وار زما وے زبړيدے

پس له دے به زما وير په تمنا وی
نيمه خوا مينه زما شوه وړے وړے

په رښتيا ئې ئن له ما ځنې جدا کړے
دا چه تير زما په خوا شوے غلے غلے



ذرهٔ مے نهٔ اخلی پيوند شئ بے قراره
چه رسا يم ستا بڼړو غشو ويشتلے

وړے وړے به زما زړګے ملال وی
دم په دم چه د راځی تصور ښکلے

زهٔ له تا نه خفه نهٔ يم که ته واځے
دا په دوارو سترګو راغے ستا بللے

پېښور (پېښور يونيورسټي)
۸۴-۴-۱۶



یوه لوبیه حادثه ده
یوه ستړے سِلسِله ده
خوچه تیر دچا په یاد شي
ژوند سرور دے یو نغمه ده

ما ته یاد شي دا خیالونه
زما داسے اول نهٔ وو
خوچه هر طرف ته ګورم
په هر لور خره خوره ده



زهٔ هم چه زهٔ بے کوره
بے درکه د صحرا یم
خو دا یو احساس د مینې
زما لویه اثاثه ده

د رسمونو دا بندونه
زما لاره نیو ے نهٔ شي
زهٔ به تا لره درځم
دا هم تاسره وعده ده

که هر څو هم زرهٔ ذهین دے
یو ذره هم پروا نشته
زهٔ هم مست دچا په مینه
که د کال هره لحظه ده

کله ئې زۀ له تا جُدا کړم
در پۀ درې پۀ غوغا کړم
نۀ پۀ خپله برخه ژاړم
نۀ له چا م خۀ ګله دۀ

پېښور زرعي يونيورسټۍ
۱۰/اپريل ۱۹۸۶ء

—★—





هسې له غصې دې په توده خبره اوکړه
ما خو په محفل کښې ستا هغه خبره اوکړه

اوس دې ولې ما نه په بل لورې اړوے مخ
هم ستا اسرار کولو ما ښکاره خبره اوکړه

وخت وچه فطرت بدعمله کښې موسُر راخت
ستورو به د ماته شپه په شپه خبره اوکړه

ماوے میکدے تہ یہ نن اووایہ څوک نۀ راځي
داسے زم ساقي: تہ پہ بهانه خبرہ اوکرہ

تاچہ پیغام یو رو ځغے بُشکلی آئینه کاته؛
داخو دِ ریبارہ پہ موقع خبرہ اوکرہ

عشق کښے، او بیا یرہ د اغیارو سته؛
دا پہ لوبیه خله دِ څۀ ورہ خبرہ اوکرہ

(پیښور زرعي یونیورسټي)

۲۹-۵-۸۲





ما ورته وئیل د زهرو ډکه ده
ستا به هم ځواني د زهرو ډکه شي

څۀ چه په تاکران دی
دا دِ ځغے قربانی غواړي
ځان خاور ے کول
دا صِفتونه لیوني غواړي
زوړ بر ے لاځه
دا قوتونه ایماني غواړي
سویه حوصله سکه
اسدان دا اسماني غواړي

* ځغے ته اشاره ده۔

وے ئے مۀ وایه آشنا بیا دا سے مۀ وایه
څۀ چه دِ په زړۀ دی هم هغه وایه

وے ئے زوی لرم پروا نۀ لرم
خوئ سکه د پلار لرم
وے ئے لویه حوصله زما
وا ړم همه ساز لرم
وے ئے څۀ وی هغه میته
چه حاصل ئے لایو ځان نۀ وی
ګوره په یارئ کښے سوال
د ځان او د جانان سنۀ وی
وے ئے مینه کښے فنا ګوره
فنا د عام په شان نۀ وی
خپل لری منطق سکه
تاوان پکښے تاوان نۀ وی

وے ئے مۀ وایه آشنا بیا دا سے مۀ وایه
څۀ چه دِ په زړۀ دی هم هغه وایه

پیښور
۹ - ٤ - ۸۵





زۀ خو په روغ نیت ترے نه مر ځلے توبه اوکړمه
څۀ اوکړم زاهده چه خفه شم نشه اوکړمه

ځان م د جانان دے چه م ځان د ے
څنګه به د ځانه زۀ ځل ځان ته ګِلهٔ اوکړمه

اوری خو یس دا چه لا ما شوم ګنۀ پوهیږی به
څوکه ورته زۀ د سوزړۀ م قصه اوکړمه

زهٔ خو په دے پوهه یم چه روا نا روا څهٔ وی خو
ستا د زړهٔ دپاره خپل ضمیر ته بهانه اوکړمه

دا به زما وس نهٔ وی چه زهٔ ترے ته زړهٔ صبر کړم
هسے په کولوګنی څو ګل وعده اوکړمه

پیښور زرعی یونیورسټی )
۲۷ - ۵ - ۸۷

~★~





یا م امتحان اخلی
یا راته ګیله کوی
ګیله چه آشنا راته
بیا د چا قصّه کوی

ماته په خندا کښے دا
ماته چه دا "سنه" کوی
پوهه شم شرمیږی دا
ماته زړهٔ کښے "بنه" کوی

کله چه خفه شی دا
بیا راته بس هن کوی
دواړه سترګے ښکته کړی
سر په زنګا نهٔ کوی

پټ د ښو لاندے چه
دا راته کاته کوی
یا چه سترګے واړوی
پورته لاس په خُله کوی
پوه شوم جادو نهٔ کوی
خو دا رم په زړهٔ څهٔ کوی

پېښور (پېښور یونیورسټی)
۱۰ – ۱۰ – ۸۴





خمار د تغافل د مرا احساس رم رابیدار کړی
بیا رم په بادهٔ د تیر وختونو پُر خمار کړی

کله دا فطرت چه په چا سود دُ رنګینو کړی
دغه تصوّر ئے خورو زلفو کښے ایسار کړی

راکه ساقی راکه نن په خُنبه تر صغے چه
هوش حواس رم دواړه ترا بده بے اختیار کړی

تهٔ دِ الو توئے نظر اوکړے له ښیوے څو
ماته ژوبل ژوبل ارمانونه مِ راپیاد کړي

یار چه درقیب سره دسُرو گُلو په سیل ځي
څه په ناترسی مِ گرنگو ته گزار کړي

عقله ته بس دا چه وسوسے دِ ځان سره ساته
زړهٔ ناپوهه نهٔ دے چه به هسے انتظار کړي

حُسنه جوړ په تا هم دَعشق شوے دے
لوړے نهٔ دے زړبه نمانه تا هم په دار کړي

پیښور (زدمي یونیورسټي)
۲۶-۵-۸۷





وے ئے په سر د غرئے
یا یواځے په بیابان ئے

ښکاری سوے لوغړن ئے
سوئے سوئے په نیران ئے

هیڅ په رو دِ پوهه نهٔ شوم
چه له زړهٔ که په خفگان ئے

پوه په لاس د دنیا نهٔ سئ
که داسې ستهٔ انجان سئ

ځانې غم د جوړ یا نشته
چه په غم کښې شادمان سئ

له سرور که په ارمان سئ
تل په اور یا په طوفان سئ

له ما لرې لرې وسې
په تیرو کښې په اوسان سئ

دا د سیند په غاړه وسې
ترې ترې د کاروان سئ



ما وې مینه مینه نشته
ډېر په دې م زړه ژړېږي

له م چا نه لرې لرې
دا نګې ګانړو ته غوږېږي

د رسمونو په سیلاب
ارمانونه م ډوبېږي

دا ازغي ازغي وختونه
ورځې شپې دې چه تېرېږي

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۵-۱۲-۸۵



هر لوري چې تياره شي
وې ځې ته راته ښکاره شې
دا څنګه بې له ماسته
خپل ځان لره شغله شې

احساس دِ وفا سنځ وري
وې ځې څومره بې پروا دے
وې ځې سود د چا د مينې
خپل څنګ ګله په چا دے



زړه مې په تورو شپو کښې
ماوې رنګينئ وينم
وسواس مې دغه وائي
دا تا ليونئ وينم

ستا مخ له ما پناه کړي
دا ستا لاسونه دواړه
ارمان دے چې پرانته وسے
تل تل زما په غاړه

احوال د کيفيت دِ
هر ځل دِ د وفا دے
احوال د کيفيت مې
څنګ اووايه آشنا دے

بیائے چه ناصحه قصّه اونهٔ کړے
وقی چه له زړهٔ وی په زړهٔ نهٔ راځی

زړهٔ خو دغه زړهٔ وو چه تا یوړلو
نوره ږ له ما ځله په خهٔ راځی

دا به زمونږ زړونه له یو بله ماړه شوی وی
سینه کښے مښین خو ګنی واړه په وعده راځی

(پیښور زرعی یونیورسټی)

۲۹ - ۵ - ۸۷





داتپوس خوله ما اوکه ستا په غم پېږدُ ما خومره
تودے اوښکے تو ے کړی

تهٔ چه دا خبره زیادے چه ما ستا لارے سارے
تهٔ چه دا خبره زیادے چه ما ډیر ډیر یادو ے
نو زخمونه م نهٔ ګورے وه دړدونه م نهٔ ګورے
چه دا اوښکے م روانے وه رودونه م نهٔ ګورے

دغه سترګې که ماچاته    یو ذره وی اړولی
دغه سترګې که ماچاته    یو ذره وی غړولی
هره یوه نهٔ مسنم دِ    خو یوه هم نهٔ منې رِم
هره یوه قبلوم دِ    هره یوه ددکوې رِم

دبهار په رنګینو ښکلې    ستا یادونه راسره وو
د فراق په تورو شپو کښې    ستا غمونه راسره وو
په دے سترګو کښې رِم ګوره    ستا یادونه په ښکلې بنکاری
د فراق هغه ګل واره    ارمانونه په ښکلې بنکاری
داتپوس خو له ما اوکه

بمبریت کلاش دچترال)

۱۶-۵-۸۶





دیرے زړهٔ ته راشی لارے چرته شی بیاشهٔ شی
ستا مخکښې آشنا له مایوه خبره نهٔ شی

شوق د دیدرِم دروی ستادرته یاراستوئن شم
بی دا اندیښنه چه ښکلی یاربه رِم خفه شی

تهٔ وائے آشناچه زمامینه په بدل ده
رانغلې یوځل ته چه داستا لاره کاته شی

څنګ به ستا خفه شمه دا څه ناروا وائې
ستا د عشق په لاره دَ سترګو تور دِ زما اوبهٔ شي

حال د ارمانو نو زما څهٔ وی ستا په عشق کښې
راشی په مخ او ښکې ځنې او سوزی وراتهٔ شی

پېښور (پېښور يونيورسټي)
۸۹ - ۲ - ۱۶

\-\~*\~\-





وے ئے دا سے که ژوندهٔ شی
ژوندون معنیٰ به څهٔ شی

دغه لاره د منزل به
راته ګرانه شی اوږده شی

ارمانونه به په زړهٔ کښې
زمونږ خاورے شی ایره شی

ما دسے ستا د مینے ډک زړهٔ
دِ هېڅ کله خفه نهٔ شی

د وسواس په لمن کښے
داحساس غشی تیره شی



چه زړهٔ ډک وی له خلوصه
حوصله لا ورســـــــره شی

لرے نهٔ دهٔ ډیره زربه
رنړاګانے د اتوره شپه شی

پېښور (پېښور یونیورسټی)

۲۷ — ۱ — ۸۹





زما دیار ذلفے خورے خوښے دی
سترګے دیار م خمارے خوښے دی

د نیمے شپے راله آشنا م راځی
ځکه د شپے زما تیرے خوښے دی

د چا د سرو شونډو شراب م خښلی
زما د عشق وارہ نشے خوښے دی

ورکوے تہ زړهٔ دغمه دک کړځوم
دما شوم زړهٔ دغم قصّې خوښے دي

بے له تا چه په ما سنهٔ تیرېږي
زما دژوند هغه لحظے خوښے دي

بل ته به خنګه سترګے واړومه
چه زما دیار په درسجدے خوښے دي

څهٔ په هجران کښے زما حال به شي
څهٔ دوصال شپے زما اوږدے خوښے دي

(کوهاټ)
۱۹۶۹ء





لوے نهٔ ده زړه به راشي
چه به ستا دزلفو لاندے
زما خوب زما قیام وي

بیا به چله به درو ایم
دا چه ووم ژړولے
ستا له خنګه زما یاره
دا چا ووم جدا کړے

بیا زمونږ به یوه لاروي

نهٔ به غم دتنهائی وی
نهٔ به زړهٔ ستا نا قرار وی

نهٔ به غم دجدائی وی
نهٔ به غم زما دخوار وی

نهٔ به غم د رسوائی وی
نهٔ به یره د اغیار وی

دا زما دواړه لاسونه
به بیا ستا د غاړه هار وی

پیښور (پیښور یونیورسټی)
۱۹۸۱ء







چه کله کله زلفے راخورے کړی زهٔ پوهیږم
دا زړهٔ زم ارے ارے کړی زهٔ پوهیږم

که رحم تصور کښے د یار مینه زم تیر باسی
غلی غلی راشی اشارے کړی زهٔ پوهیږم

زغلی له هیبته نکه داؤ دچا په مینه وی
خاندی ادا ګانے کړی نخرے کړی زهٔ پوهیږم

اوښکے نهٔ وی زړهٔ وی زما داچه رابهیږی
راشی په ګلو کښے ننداره کړی زهٔ پوهیږم

پیښور (پیښور یونیورسټی)
۱۹۸۱ء



بیا عِشق آئینه راکړه
دے ټکوره پکښې ماته
په څخ چه زړ دا داغ دے
دا ادبنایه دنیا ته

ملګرے زړ هم ته وے
په لاره د منزل زړ
نو څومره چه منزل وو
له تا وو په خلل زړ



چه زهٔ دِ په ایثار کړم
په وخت درسیدو نه
د مینې په ماتم کښې
په یار دژړیدو نه

هیڅ عدل در کښې نهٔ وو
دنیا ته دِ بدنام کړم
د وخت په لغزو کښې
څنګ زهٔ به دِ نیلام کړم

وختونو له کړے سترګے
په نوم دِ زما تورے
شو څومره چه الزام وو
زما په لمن پورے

بیا ذرهٔ ئے په ژړا پوه شوم
چه عشق کړه په خندا کښے
د خود وتے بهس وو
د ظلم[1] په صحرا کښے

څه دومره وو ما کرشمے
د عقل په دنیا کښے
چه ځان م وایم ډوب کړے
د اوښکو په دریا کښے

(پېښور یونیورسټي)
۱۹۸۰ء

[1] ظلم ته اشاره ده۔





قسم دے غرور نشته ذره م په آشنا کښے
تیرین بی پته سترګے له جانه زما خوا کښے

ابنا د غمونه څهٔ وو په وار د زیړو ګلو
بهار دے اوس تیرین بی عالمه په خندا کښے

انکار د زمانے وی سرور د یارانے وی
خفه شو دیوبله یم تلے چه سودا کښے

هر بار د زړګي وينې دلدار په ليو توې
سرور وي يونشه وي د ښکلو په مُسکا کښې

زخمونه م اوده شي بې پڅې بې مرهمه
د مينې له بدله چه يون که يار ښکلا کښې

اوس يار د يوه نه اوري لمبه د په هر آه شي
اثر چه پاتې نهٔ شو زړينه ستا وينا کښې

پېښور (پېښور يونيورسټي)
۱۹۸۱ء





د ژۍ مازيګر وو
زهٔ تلې وم بيديا ته
د جونو يو ښکر وو
زهٔ تلې وم بيديا ته

ګلونه دغا ټولو
دوئ ايښي وو لمنو کښې
له يو بله به تلې
دوئ مخکښې په نخرو کښې

اوس یوه پیکښې راغله
په خوا کښې زما وائ
ملګرو یو سوال دے
جواب که ئے څوک وائ

بیا داوائ چه زړهٔ دا
څوک څنګ اُوسی له چانه
چه خوښه دچا نه وی
څوک څنګ اُوسی له چانه

یو پیغله شوه را مخکښې
په غوږ کښې ورته وائ
یو عرض درته کومه
که گُلے ستا رضا وی



آتا چه توے راوړے
تل سر چه په بیدیا وی
په خوا کښې د ولاړ دے
جواب د درسته وائ

بیا زهٔ شومه ورمخکښې
ماوے دچا په خوښه
نهٔ زړهٔ وړی څوک له چانه
نهٔ داوی دچا خوښه

څوخندا د سرو شونډو
یا ولوُنه د زلفانو
رخسار لکه د گُل
یا سهر د چشمانو

له نازه په مکین تلو
شرنګا د پازیبو ئې
ادا د سپینو لیچو
خوله د ننګو ئې

پلیئ (ملاکنډ)
۱۹۷۹ء

*





دا یادونه به تر عمره زماوی
دا دردونه به تر عمره زماوی

غلی راشی راته ګوری په خندا شی
دا خیالونه به تر عمره زماوی

دا ئې مه ګڼه ناصحه چه به چپ شم
دا ږودونه به تر عمره زماوی

داسې نه چه کټی غم دیو ساعت دے
دا غمونه به تر عمره زمـــــاوی

دغه یو ګـنـډار دسترګو د پوره دے
دا زخمونه به تر عمره زماوی

ډیره کمه په تقدیر کښې رم خنداوه
دا آهونه به تر عمره زماوی

هغه دواړه سترګې نشه چه راڅخه شی
دا ارمانونه به تر عمره زماوی

مینګوره (سوات)
۱۹۸۳ء





یو احساس دے چه رم تاله
له مر چا نه پټ ساتلے

داملګرے دتیرو رم
له دنیا نه غلے غلے

چه رنګین رم په مدام
تصوّر دَمینې بنګلے

یاد د مینې راپه زړهٔ کړی
دشرور په غم لړے

بس هم دغه اثاثه م
چه ژوندون چرے زاکړے

څومره ښکلے ورځې شپې وے
ستا په څنګ له یوے بلے

زهٔ به څنګه هیروم آ
دخلوص په تارپیئلے

پیښور (زرعی یونیورسټي)
۲۵-۲-۸۶





اور د مینې بل وو سوزیدمه په مزه مزه
او سومه لوګے شوم الوتمه په مزه مزه

مینې دِ خوابونه نمونه زاکړو ایله پوهه شوم
ستا د مینې خیال وو خوبیدمه په مزه مزه

ورک د څپله ځانه په خورو زلفو اوږدو کښے ووم
دغه زما ژوند وو ورکیدمه په مزه مزه

اوښکے شوم همه را غلم په څپلو دوارو سترګو کښے
ستا په انتظار کښے ژړیدمه په مزه مزه

پټ دېرو لانده چه کتل ما څپے ښکلی ته
عشق مې چا دار وو شریدمه په مزه مزه

پېښور (پېښور یونیورسټی)
۱۹۸۰ء

~ ★ ~





ساقی نهٔ څښم ستا شراب تراؤ تراخهٔ دی
بېګانی مې پاس په زړهٔ داسے پراته دی

ماویل ګوره وکه په دے مې قام غلط شی
یو په سل غمونه نور مې لا په زړهٔ دی

ساقی بنهٔ وُم چه په څپل سرُور کښے غرق وُم
څهٔ خبرے د ښکلا رنګونه ټول راته په تله دی

کیفیت مې د زړهٔ څه پوښتې چه څهٔ دے
بس ملګرو تورتمونه لګا مې لورے د اخوړوڅ

له اثره ئے اوس خبر شوم ارمان راشی
ستا د یاد په مقابل شراب د څهٔ دی

راشه راشه دیار خیاله په بنکلا مې لړ بوځه
قدمونه یو په بل بدم حواسونه مې ړانده وو دی

( پېښور )
۲۰-۵-۸۴





چه آمونه مې ساه واخلی
تکه خیال په بلو راشه
د ماښام په زیړی نمر کښے
تو له شپه ستورو ته ګورم
بس په دے چه زړهٔ کښے وایم
وی به ستا هم په نظر کښے

نهٔ په خوب نهٔ په شوګیر یم
در پښے زهیر دلګیر یم
له ما لرے نا خبره
په ژړا په یو بهیر یم

شپه او ورځ تويومه
ستا په غم کښې تو دے اوښکے
له عالمه پټ پټخانه
ستا په غم کښې تو دے اوښکے

څهٔ تاوان دے دا د اوښکو
يو نظر د خيال راتلو دِ
په دے درد د بيلتانهٔ کښې
يو نظر د خيال راتلو دِ

په سلګو د اُميد شمع
شی مابتام دِ تا په طمع
تو په اوښکو بيا رڼا کرم
توره شپه دا بے صبا کرم

پيښور (پيښور يونيورسټي)
۶۱۹۸۲





خبره زما او ستا وه تهٔ رانغلے
د مينے د وفا وه تهٔ رانغلے

زما مړے ترے نه تاؤ واړه اغيار
ځو مره ښکلے مشغولا وه تهٔ رانغلے

څهٔ زمونږ دلاسه پاتے وير د عشق
زمانه هم بے حيا وه تهٔ رانغلے

ټولو ځیل یاران راوستی ووګلشن ته
ګیر چاپیره به بنګلا وه تهٔ رانغلې

ناغرضه دِ ځان څنګ کړو په خوږ بیان
ستا کو څه کښې اَنګولا وه تهٔ رانغلې

بیا د نازه څه کاتهٔ دِ په تلو تلو کښې
زما درد لره دوا وه تهٔ رانغلې

دا خو راغلو د زړین د کورستانه
جنازه دِ د آشنا وه تهٔ رانغلې

پیښبور (اسلامیه کالج)
۱۹۷۷ء





ژوند به تسلسل د غم
احساس به لوګے سوځے
ستا که دا خلوص
او دغه مهروفا نهٔ وے

ډیر یم ملامته درته
فکر ځانته وړے
مړ دِ وے له هجره
یارم شرم حیا نهٔ وے

دا په یو بهیر ژړا
په ویښه هم په خوب کښې
دومره ناقرار خو سته
زړګیه زما نهٔ وے

(پېښور ، پېښور یونیورسټي)
۱۶، اګست ۱۹۸۶ء

~★~





تا له چه درحمه ستا خندا لره درحم
چا له چه ورحمه ستا رضا لره ورحم

راشه چه یو یون شي په یو لاره دجنون
داخهٔ دی؟ تهٔ ماله اوزهٔ تالره درحم

خوار دے هغه ژوند دے که هر چالره اختر
نهٔ راځي آشنا ئے وا ئي آشنا لره ورحم

اُوس په ذړګی بل کړلو دا رنګِ محبت
زۀ یم وسوسے دی دلربا لره ورحَم

کُار له حسینانو، مِئینان دی په دنیا
خیرکه بے وفا دے، بے وفا لره ورحَم

پیلئ (ملاکنډ)

۱۹۶۸ء





آغه جسے کَله کَله
چه زمونږ به مشغولا وه
آغه جسے کَله کَله
به ستا خوا زما په خواوه

آچه مونږ په نیمه شپه به
کړے د ږروتو دیوے بلے
چه به تا ګلے ماتے کړے
هم پرسیره آما خپلے

آچه موږ به په خپل اور
خپله ځان سـتی کولو
آچه موږ به ـکه شمع
آ په زور صبا ګـولو

ماته یادشی تابه خوږ کړو
تور اوربل په سپین رخسار
آغه زهٔ چه به دِتا په انتظار
آغه تهٔ چه به زما په انتظار

(پیښور. پیښور یونیورسټی)
۲۸ - ۸ - ۸۹





اوږ دے زلفے تالونه دِلیلیٰ مهٔ خوروه
رنګین رنګین خیالونه ته زما مه خوروه

مازړهٔ دےستاپه زلفو کښے پیښلے
په اوږو باندے امیلونه دبل چامهٔ خوروهٔ

خبره پټه دے نشی زما او ستا دعشق
خو ته ئے له خپل لاسه په دنیا مهٔ خوروه

بس دا لوبه به دنیا زمانه نشانګې که
ګلونه مې په قبر د بیدیا مهٔ خوروه

پوښتنه کله کله مې کوه چه حال مې به څه شي
خیر د عنبرې زلفې په ما مه خوروه

پیلئ (ملاکنډ)
۱۹۶۸ء





تونده خو د ژوندون بس د زړګي له شور و شر ده
لا څه شو که بیان مې ستا د عقل نه بهر دے

د عقل په رڼا زما دا شوخ او مستي نه ده
دځان په دے تیروکښې زما ځان له ه سحر دے

ځان ته په خندا شم په ژړا شم لیونے شم
دځان دے تیرو تو وته دا ځان زما اوتر دے

لاڅه شــوکه زړه روڼ شومه ستاځ لیدےته شم
داته چه په راګورے خوداهم زما نظر دے

دالاس به زما بند څه ددنیاپه تږون نشی
پرصرد زړهٔ په سره دجانان د زړهٔ پرص دے

داغم نهٔ دے که اوښکے م په سترګو کښے غریږی
په رنګ کښے د ماتم راله راښکلے غن اختر دے

پېښور ( پېښور يونيورسټي )
۲۳-۶-۸۶





نوګل د پسرلی به زهٔ ملګرو دوړیدم
دځانه خبر نهٔ ومه په ځان نهٔ پوهیدم

په دوٌ د ډوندانهٔ کښے م ملګری وو غمونه
یو بل ته ګله ګله ، ګله دوئ ته ژړیدم

داسترګے په ژړا زما داوښکو آستانے شوے
پټ پټ دڅپله ځانه په څپل ځان کښے دویدم

نهٔ داغ د زمانې وو نهٔ پروا د ویرانې
غو ځې له خپل خیاله په خپل خیال کښې شړمیدم

د خیال په ادیرو کښې ږیو ځل چې صبا شو
خوستوری له خپل ضعفه د رڼا نهٔ پټیدم

د نمر په لیدو چې زما حال د نمر پرست شو
د ځانه لرې وې د ادځانه لرې تلم؟

سفر د وفا او د زما ځان لره څهٔ نهٔ وو
خو زهٔ وم چې د لارې به بې لارې اوړیدم

لا څهٔ رنګ ارمانونه توکیدل د زړهٔ په کور کښې
چې ملګرو په از غو کښې اوسیدم

وبال شو دستی زما له د غه رنګه خوبه
په نیشت وه حساب شوې چې د ځانه خبریدم

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۱۹۸۱ء





وې ئې تا په قید و بند کښې ځان په پله اچولے
غم دِ ځائې نشته ځان دِ هسې غمزو سے

وې ئې پوهه شم له سترګو دِ چې څه لرې په زړهٔ دِ
حال د زړهٔ آشنا دِ وایم ما درته ویٔلے

څو که ئې ته پته له دنیا کې په کلګو کښې
غږ د د غې مینې دِ اوس لرې لرې تلے

وے ئےغم نۀ وےعزت او احساسات مو په سرلی وے
جولئ مو په سحر د دید نونو دکوے

دلته مال د زړۀ ځوک په رښتیا ویلے نۀ شی
لرے د دنیا نه د غره سرکښے او سیدے

پېښور (پېښور یونیورسټی)
۲۸-۹-۸۴





دچا د عشق په سرور
ورته ژړلی وو مـــا

دواړه لاسونه په سوال
ورته نیولی وو مـــا

ما وے ارمان د مودو
دَ ژوندانه دے زما

دغه انعام د مینې
د بیلتانه دے زما

چې به خُلا ورکړی
یو تیاره شوی ژوند ته

یوه اسره به ورکړی
د چا زړلی ژوند ته

خو دَ رسمونو په نوم
مینه رسوا شوه زما

آ دَ خوبُونو دنیا
تالا واله شوه زما

سخاکوټ (ملاکنډ)

۸۵ — ۱۱ — ۱۴





له ازل دے نام دَ عِشق
تر ابد دے نام دَ عِشق

چې رسوا ورپه کښې نهٔ شے
څنګ به وینې بام دَ عِشق

تل تر تله ورګډېږی وے
زما خوښ دے دام دَ عِشق



راغې هغه ګل چه په عمرونو نه راتـلو
مینه زمانهٔ وه که په مینه نهٔ پوهېدو

ښکله د زړهٔ حال زمانې ماته صحيح اُو وے
غل د زړهٔ دکودرِ هم په کور کښے اوسيدو

مراحساس زمانې بيا په مينه را بيدار کړو
څپل ووکه پردے وو ماته ځان اوښکاريدو



شپه او ورځ راته ډک وے
ستا د مينے جام دَعِشق

*

د دنيا هر څه نابنه شو
بس يو ځوره جام دَعِشق

پېښور (پېښور يونيورسټي)
۱۹۸۱ ء

یولحظه چه څخ به سۀ زما دسترګو وارو
روح به ناقرارم ماوے ساه رم اوتو

دغه دوارہ سترګے زما او چے شی رندے شی
اوس چه هغه وخت شی دآشنا رم دلیده و

پیښور (پیښوریونیورسټی)
۱۲ — ۷ — ۸۴





سوالګرے بیا ستا دآستانے شوم
مثالی مایوس چه زۀ د زمانے شوم

که اغیار دِ وارہ چل کړو پروا نشته
دا دِ نوی زۀ دِ یاد اوس پخوانے شوم

چه دپارہ ئے ماسراو مال قربان کړو
په نظر کښے ئے بد تر له دیوانے شوم

زمانے ته چه ښکارہ ستا یونے شوم
زۀ زړین ځکه کردار دافسانے شوم

اسلامیه کالج پیښور
۱۹۷۸ء



نظر ونه په دنیا چه ئے
دا هسې رنګ مادی وی
احساس دژوندانهٔ ئے
همه واره سرسری وی

دے ئے اوګوره احساس د مینې
څنګ هم رابیدار کړی
اساس چه خلوص نهٔ وی
مینې واره فریبی وی



د"ستا" او د"زما" چه
څهٔ نسبت لری په عشق کښې
لاسم لیونی نهٔ وی
که دا هسې لیونی وی

کوټل (کوهاټ)

۸-۶-۸۴





وے ئے تا سرہ فریاد دئے ارمانو اسویلی دی
ځوک دی ستا په شان چه سربیري لیو فی دی

وے ئے څه وینم روان د په مخ تل رودونه وینم
احساس د تکلُّف د صبه واړه لا دینی دی

وے ئے حُسن د جنت د حُور وځه د زما ورانه
ما سره خار د نزے شونډے الوافی دی



وے ئے اوګوره خاطرته زما جمع له عقیدت م
تا له انتشار څه خیالونه وسواسی دی

بیا ما وے انتشار زما هم ستا له جمعیت شی
دا ستا که دغه نهٔ وے دا زما بیا قیاسی دی

دا یاره ستا د مینے په وجدان کښے زما خوب شی
افکار وسواسی نهٔ دی دا خوبونه وجدانی دی

بے زما له مینے د حقیقت دَ حُسن څهٔ وُو
دا حُسن بنګلا زما د مینے څپل ځانی دی

پیښور (پیښور یونیورستي)
۲۵-۶-۸۹



غم دیار م ژړوی خلقه په رو رو
د عشق لار م کړوی خلقه په رو رو

چا ته سم د زړګی حال وئیلے نهٔ شم
درد د زړهٔ م زیړوی خلقه په رو رو

نور یقین ئے په وفا کوے نهٔ شم
چه جفا م ئے لمسوی خلقه په رو رو



د دلبرو یارانے واړه لعل[ط] دی
په هر بار م خویوی خلقه په رو رو

د واړه سترګے زما اوچے په ژړا شوے
انتظار م ئے رنډوی خلقه په رو رو

پښور (پښتو یونیورسټی)
۱۹۸۰ء



[ط] داد کرے خلق د "فضول" د پاره استعمالوی۔



دخیالونو په دنیا کښې
دَ ګلونو رِم دنیا وی

دګلو نو په دنیا کښې — دداغونو رِم دنیا وی
دداغونو په دنیا کښې — د دردونو رِم دنیا وی
د دردونو په دنیا کښې — دآهونو رِم دنیا وی
دآهونو په دنیا کښې — د رودُونو رِم دنیا وی
د رودُونو په دنیا کښې — د رنګونو رِم دنیا وی
د رنګونو په دنیا کښې — رِم د خیال یوه لیلیٰ وی

څنګی زما د زړګی ویښې
د ژوند شان سکیا وی

پیلئې (ملاکنډ)
۱۹۷۷ء





هسې تېر شی دغه نن صبا پرون دے
لکه سوز په سیلئ زغلی څه ژوندون دے

له هسه دنیا خفه یم بې له تاشه
دغه ځه ئې چه دِ زړه له ما زبون دے

یوه ورځ په غوټئ ګل شی خوشبوئی له
نن ئې مه شوکوه ګل د صباوُن دے

حیرانیږه مه زما دغه انصاف ته
هر یو کار چه له ما شوے له جنون دے

په خندا خواله راځه لږ خندا رویه شه
دغه عشق د سراسر د زړهٔ چاودون دے

چه نهٔ غم د دنیا کښې نه م ارمان شته
نو بیا ولې م د اسرتل په ځنګون دے

بے جفاۓ نور له تالیدلی څه دی
بیا هم عشق کښې د زړین د تا ممنون دے

(پیلئ رملاکنډ)
۱۹۷۸ء





ما به د درد او د نغمو خبرے نهٔ کولے
ما به د ناز او د نخرو خبرے نهٔ کولے

ما به د راز او د نیاز خبرے نهٔ کولے
ما به د ساز او د آواز خبرے نهٔ کولے

ما به د غم او د الم خبرے نهٔ کولے
ما به د جورو د ستم خبرے نهٔ کولے

ما به د گل او د بهورا خبره نهٔ کوله
ما به د شونډو د مُسکا خبره نهٔ کوله

ما به د غير او د اغيار خبره نهٔ کوله
ما به د يار او د دلدار خبره نهٔ کوله

ما به د جور و د جفا خبره نهٔ کوله
ما به د سوز او د سوزا خبره نهٔ کوله

نو يوه ورځ تار په تار شو خيال
داسې په عشق کښې گرفتار شو خيال

دغه چه ما وے يوه پاتې نهٔ شوه
چه ورته لار اوش د جنون وايمه



اوداچه زم ځان پکښې په آور ښکاري
د سُرود دک ورته ژوندون وايمه

پېښور (پېښور يونيورسټي)
۱۹۸۲ء





چه ګلونه زما ښکلی د ګلشن دی
دواړه سترګې مې اوبه د دیدن دی

چه دیار سره د سرو ګلو په سیل ځم
که مې خپل دی که پردی واړه غمژن دی

که پروا مې د غم نهٔ کړے پروا نشته
لا کوم یار په غم ژړلی د مین دی



قبولوم به ئې مرغم زهٔ په سر سترګو
خیر دے ښکلی که د امالره دښمن دی

خدائے دې نهٔ کړي چه به زهٔ ئې ورانومه
زما خوښ د عشق داغونه په بدن دی

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۱۹۸۱ء





وے ئے ستا خیالونه د ورو دی
په ناڅه زړهٔ غولوے ته

وے ئے دځان سره په جنګ ئے
هسې توره روڼوے ته

په یوه لحظه د وصل
پیے وینے ورکوے ته



په چل ژوند دخپله لاسه
ځان په خپله ورکوے ته

چه په طمع د وفا ئے
ګنړه ښکار د عنقا کړے ته

په تیرو تورو د ژوند
د ژړا ګمان کوے ته

له انجامه نا خبره
ځان به دار ته رسوے ته

په جواب کښې ورته ما وئیل
چه زه خو سره پوهوے ته

ن د مینے پہ نظر کښے
هومره ځان لانده کوے تہ

زۀ خبر یم غلے غلے
چہ ئے رقیب تہ غروے تہ

دا پہ یاد د سوے مینے
خپلہ اور پورے کوے تہ

ستا پہ خیال کښے زۀ ستی شم
چہ پہ اور م سوزوے تہ

پوهہ د عشق پہ معنی نہ ئے
سرسری نظر لرے تہ



دا زما د زړۀ علاج شی
چہ م څومره رنځوے تہ

هسے بنۀ جواب د مینے
پہ ډیر بنۀ رنګ راکوے تہ

پس لہ دے بہ ئے پہ خپلہ
جوړوے او ورانوے تہ

نوره ستا خپلہ رضا ده
کہ راځے کہ نۀ راځے تہ

زۀ لہ تا نہ ګلہ نۀ کړم
چہ م څومره خفہ کے تہ

که د سره دِ ذرهٔ هیر شوم
که په زړهٔ کښې مِ ساتې ته

چه تهٔ ما سره جفا کړې
د احساس غوټۍ مِ ګل شي

دا زما احساس د مینې
غمزده شي لا په نول شي

دا دنیا زما نظر کښې
خود غرضه بې وفا وي

دا ملګرې د دې چه
د سفر په وخت جدا وي

(پیښور زرعي یونیورسټي)

۱۱-۱۱-۸۵





دا د چا غمونه خدایه
دِ زما کړو په حقه کښې
چه مِ سر لړزی په زمکه
نهٔ مِ خوب شي په لیمهٔ کښې

نهٔ مِ یار چرې په څنګ شو
نهٔ ئې ځائې کړمه په زړهٔ کښې
ارمانونه مِ لوګې شول
ټول امونه په سینه کښې

همانې ژوندون مې تېر کړو
انتظار په وسوسه کښې
لکه ګل بې وخته اوسوم
تېرې توبې په مېره کښې

که هر څو مې ورله يوړے
د زړهٔ وينې په تحفه کښې
تش داغونه يې په زړهٔ راکړو
هر يو وار په بدله کښې

پېښور (زرعي يونيورسټي)
۲۴-۵-۸۶





زهٔ يې د قامه غمزو لے پاسيدے نهٔ شم
په ژړا ژړا شوم ستړے نور ژړے نهٔ شم

ملګرو ګورئ دا د عشق ژبه ګونګې څونهٔ ده ؟
زهٔ په پوهېږم خو آشنا په پوهوے نهٔ شم

هغه د پېښې خلے وعدے تراوسه ياد مې دی
لوظونه مهٔ کړه بے وفا زړهٔ په خوړے نهٔ شم

دغه خندا مې درله بس دهٔ که نه نوراوجاندم
زهٔ په زخمي زړګي آشنا درته خندے نهٔ شم

ستا به آشناوی ګُله ورشه تهٔ ورځه ورسره
ما ته رقیب دے د زړهٔ سره زهٔ درتللے نهٔ شم







چا له ئې په طمع په ارمان نيولی
مراوی ګلونه مې جانان نيولی

دومره ناځاپه چه روان شوے له ما
پوهه شوم نوی د ياران نيولی

يار مې ټپوس چرته په هيره نهٔ کړي
دلته سکروټې ما په ځان نيولی

چه په خندا دیار خندا نهٔ ورځی
آغه زما غونډے خفګان نیسولی

په توره چُنټۍ هاتے آزیږ ګلونه
لکه چه ستوری وی آسمان نیولی

اسلامیه کالج پېښور
۱۹۷۸ء

( لوېته د مروتو په ژبه کښے )





تورے تورے شپے م په لیمو کښے ځایوے شمه
داچه یعنی ستا په انتظار کښے رونړ وے شمه

لویه حوصله لرمه لوے د خودۍ یت په زړهٔ
نهٔ د خپل وجود غوښے په اور خپله نیوے شمه

لاکمزورے نهٔ یم چه ټیټ په ګریوان ژاړمه
نهٔ د خپل مجرم جواب په خپله ورکوے شمه

زورلرم دجنګ زهٔ بې نیاز ستا د سارنې یم
زهٔ د استبداد لاره په یوځان له نیوې شمه

تا به تش نامه د ظلم و جبر اوریدلې وی
زهٔ خپله مظلوم یم حقیقت ګوته کوې شمه

ګوره که د لبره مارېږې ته د اغیار په خُله
تا خو آشنا څه د اجهانونه پرېښودې شمه

ستا د ناز خندا او ګُله هغه چه بې ماله وی
سَو د زرین ځار درنه سرو ونې بهیوې شمه

(پېښور)
۸-۵-۱۹۸۴





د احساس په اُور ستی
د زړهٔ په ویر ووم
پټ پنهانه له جهانه
په تیرو کنې په شوګیر ووم

تل احساس م طوق په غاړه
هر قدم زما بندی وو
زهٔ قیدی د خپل ژوندون
ترمرګی داسې اسیر ووم

هر سحر د چا په طمع
هر ماښام د انتظار یم
په خندا کښې له ژړانه
زۀ په زړۀ زهیر دلګیر ووم

بے معنیٰ زما ژوندون
بے معنیٰ زما هستي وه
لویه خدایه ستا دنیا کښې
له هر څیز نه زۀ حقیر ووم

[illegible]
۸-۱۲-۸۵

—★—





داوتے پروت په ځنګون سروی زما
سترګے مدام په اوښکو تروی زما

ماته شراب دعشق لار اوښاق
داسے منزل دآشنا دروی زما

داخولے ستومه زۀ ورک شوے دلبر
چه په خوبانو تل نظروی زما

منم کډار د بنزو عسے نهٔ ځي
خو څه په یک چه مقرر وي زما

ایله شوم پوهٔ د زمانے سپه رواج
اوس د بس تلوله جهان ذروی زما

پیښور (پیښور یونیورسټي)
۱۹۸۵ء

—★—





کله داسے چه دا سترکے
په ژړا رم تکے سرے شي
وایم اونهٔ چوی د غمه
داسے زړهٔ رم بے اسرے شي

په دے دومره دنیا کښې کښې
څوک د مینے زمانه وي
دیو څاڅکی په لمتون کښې
دغه سترکے رم پندے شي

کله داسے له دنیا نه
زړهٔ م پاسي له هر چا نه
وایم څوک م نهٔ لیدلے
داسے سترګے م مړے شي

سمه دمه ښکلے لاړ وي
ما ته ډکه دا ازغو شي
کله داسے چه په شاړو
م کمان څه دسپرلو شي
دا زما سترګے دهوکه خوري
که دا ازغو ډکے کوڅے وي
دا زما سترګے دهوکه خوري
که هر لور ښکلے میرے وي



چه دا څومره کائنات دے
یو نقطه م شي په خیال کښے
کله داسے مایوسي وي
چه دشتونه شي په خیال کښے
دا زما سترګے دهوکه خوري
که رښتیا دغه نقطه وي
دا زما سترګے دهوکه خوري
که رښتیا دا سلسله وي

کله داسے چه په خیال کښے
دا احساس م سره لمبه شي
کله داسے چه په خیال کښے
دا احساس راته نشه شي
دا زما خیال دهوکه خوري
که رښتیا دغه لمبے وي
دا زما خیال دهوکه خوري
که رښتیا ډکے کاسے وي

ډېر تنګ شوے په جهان کښې
ډېر تنګ شوے په چل ځان کښې
دا زما زړپلے خیال دے

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۲۸-۳-۸۳

~ * ~





تا چه ترون پریکړو آ په څنګ دکرځېدو
پاتے زما مخ نهٔ شو دنیا ته د خوډو

ما خو تورے شپے وسے له دنیا ځان له مېنځ
نهٔ به راتلے پاتے څهٔ حاجت وو د راتلو

ډکه یم جولئ ده ئ دسوو ارمانو شو
لاڅے رم کوسے په تسکین د زړهٔ موندو

یو ساعت له ځنګ کښې راته لږ بیا د عمر
یک ده په تقدیر کښې زما ورځ د ګړیدو

لږ نه ده زړ به م اشنا جنازه وینې
تاب م پاتې نه ده نور دستر کو غړیدو

پیښور ( پیښور یونیورسټي )
۲۵-۷-۸۴

—★—





له هر بابه ئې واقف یم
هر اندام م په کښې زوړ شو
تل به څوک کوی غمونه
نور له عشقه م زړه موړ شو

یو ځوا یار جفا کوله
بل احساس م اوړ اخته وو
آخر حسن ئې فنا شو
تاؤ د هجر زما سوړ شو

هیڅ قانون د عشق نشته
بس طبیعت د معشوقو دے
په هر چا کوی ظلمونه
چه هر کله ئے وار جوړ شو

پیلے (ملاکنډی)
۱۹۷۸ء

~*~





زما وفا خُلوص ګوبیو یوړو
څوکه رِم بار ستا د تراخو یوړو

نهٔ لا ماشوم ووم چه په لاړ به رانه
پیغلو پلو په نیمګښو یوړو

تهٔ څهٔ خبر ئے د اثړی سترګو دِ
له ما دِ خوب مراوُ کتو یوړو

بنکارې آغه مینه دِ پاتې نهٔ شوه
تا خو به غم دِ په راتلو یووړو

زما دِ دَم دِلاسو خپو یووړو
چه د رقیب لاس دِ په اوګو یووړو

منم رقیبه چه تا اوکتله
نو ماۓ خوند دانګو یووړو

پنډۍ
۳۱-۷-۸۷





کله کله رِ مدکرو
دغه خپل زړګی ته خیال وی
وایم او نهٔ چوی له سوخته
چه له ضد په اشتعال وی
لاماشوم دے نهٔ پوهیږی
چه په نه څه دے خوشحال وی
بنهٔ موقع د خوشحالئ وی
دے بے زاره او ملال وی
ناقراره په فراق کښے
بے اختیاره په وصال وی

کله داسې چه دوخت
یو لحظه هم ورته کال وی
کله داسې بې پروا شي
چه له مرګه لا محال وی

پښتون
۲۸ — ۲ — ۸۷





زۀ د زهرو پیاله څښم یاره اګاه شه
څنګ په څنګ د عزرائیل سره ته راشه

چه په مرګی هم جفا د راسره دی
بیا مې مړی ته خندیږه په ګډا شه

نور به نوم د مینې ستا په خله وانخلم
یو لحظه د قام په ما نور ناروا شه



چه په وینښه هم په خوب
یو لحظه مې هېره نهٔ يې

دا سوزېږم د ګمانه
که رښتیا د چا په خُله يې

غلی غلی چه را ګوري
دا دِ خیال وي که هم تهٔ يې



تهٔ په کاڼي کښې د جفا کسر پرې نږدې
زما هر قدم په لاره د وفا شه

تهٔ په زخم د زړه مالګې دوروه م
زما هره ښېره تا لره دُعا شه

تهٔ په سیل د سرو ګلونو د ګلزار ځه
د زرّین په غم تاله واله دِنیا شه

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۱۹۸۵ع

~★~

څۀ قصور به را بنا ئےهم
که به سره دا سے لمبه ئے

تا وے ستا په خفه نۀ شم
اوس له ما په څۀ خفه ئے

لۀ ما لرے لرے ولے
یاره چرته ئے چه نۀ ئے

(پېښور زرعي یونیورسټي)
۸۶ – ۷ – ۱۱





ځنګه اُوده دغم په خوب یمه زۀ
خوشال په ژوند دلیونتوب یمه زۀ

بهاره ځان سره بیا راوړه صفه
مئین په یاد د مئین توب یمه زۀ

کوه جفا زۀ به ئے وفا کــــړمه
ګڼی آزاد د لهورعیب یمه زۀ

وایه داروے یا ک جام د زهرو
ځان له ژوندون ځانله اشوب یمه زۀ

پېښور
۸۱ ۹ ۲



چه دیتلې د دغې سرې په خله یم
سر تر پایه سوے سوے سره لمبه یم

آخر خلاص به له دے زره شم ستا په عشق کې
په ژړا چه تر سحره تو له شپه یم

د دنیا له هیڅ یو غم م خلاصے نشته
پیژندلے هر آفت ئے په کُته یم



آغه تا چه و وخندلی له ډیر نازه
له هغې ورځې تر ن نشه نشه یم

نهٔ باور لرم په عشق نه م ارمان شته
چه په خپله یو ارمان یوه قصه یم

پیښور (پیښور یونیورسټي)
۱۹۷۹ ء

—★—



بې له فریاده بل څه کار مې نهٔ وی
دغسې به یم چه قرار مې نهٔ وی

غوارم نازونه له یار
ښکلی یادونه له یار
وایم ستې شوې په عشق
غوارم ظلمونه له یار

یا د به آشنا ته څهٔ یادګار مې نهٔ وی
دغسې به یم چه قرار مې نهٔ وی



یادې مې یادونه ښکلی
د یار غمونه ښکلی
چه د زړهٔ سر غوڅوی
د یار نازونه ښکلی

چرې د یار په خوښه انکار مې نهٔ وی
دغسې به یم چه قرار مې نهٔ وی

د دې دنیا نه خفه
د خپل آشنا نه خفه
د غمهٔ خوب نهٔ راځی
د خپل خفګانه خفه

چرې ده ځنګ کښې هم دلدار مې نهٔ وی
دغسې بهٔ یم چه قرار مې بهٔ وی

پېښور
۶۱۹۸۰



چه باور کوی په ښکلو په خطا دے
خبر نهٔ دے چه هر ښکلے بے وفا دے

راته مهٔ وایه چه زهٔ د خلوت پرې یږدم
په کلکون م پښی ږدی دا سیما دے

ښه خبر م د بد حاله په زور زیر دے
خو پښتنه زما نه که څنګ آشنا دے



دغه عشق کښے راته شپه او ورځ یو دی
نهٔ پوهیږم چه لا شپه ده که صبا دے

له ژوندونه م زړهٔ موړ کړو دے مُلا نو
په هر کار کښے راته واقی دا ګناه دے

چه م شپه او ورځ دواړه ستړے اوری
داړ کړے یاره کوم جادو په ما دے

څنګ ریخال د وفا راوستو زړګی مته
آغیزنے چه فطرت د په جفا دے

څه ورځه د زړهٔ کورونه ورانوه په
چه د حُسن اثر زیات د له هر چا دے

سنګا سے یوه سجده په درقبوله نهٔ ده
هر یو موځ دَ خوش، فهم سری خطا دے

بس زاهده قصے مهٔ کړه خلق پوهه دی
معیبت همه له ما او تا پیدا دے

هر یو کس دلته خوشاله بحرحال دے
یو زړین دے چه له ازل په واویلا دے

پیښور
۱۹۸۱ء





نهٔ دبل چا نهٔ د هغے یمه زهٔ
د هر چا یم سپلنے یمه زهٔ

هغه په لار د وفا نهٔ ځی زما
ځکه په لار د پروانے یمه زهٔ

دومره اوږدے خبرے نهٔ وی زما
که نیم روغ، نیم لیونے یمه زهٔ

لکه ښکاري د نشانے شم خبر
چه تماشه د نشانے یمه زهٔ

ښه ده چه لا نۀ یے ته پردۍ شوے لما
چه په قرار له زمانے یمه زهٔ

چه شی له ترسه زمانهٔ ده پکار
دا چه پیدا له پوښتنے یمه زهٔ

هغه آواز د سلګو نهٔ آوری زما
پرنج دوایره سترګے سرے یمه زهٔ

پېښور (پېښور یونیورسټي)
۱۹۸۱ء





خیر ښهٔ ووم هر سحرے
چه به کړے بادوم زهٔ

دَ منزل په لُوری ښَن به
دَ اَزغو په څُوکو کرم زهٔ

ټول غمونه به په زړهٔ کښے
تل یوازے ګرځُوم زهٔ

ښکلې ښکلې ارمانونه
به په خپله ښښوم زهٔ

درد دُ زړهٔ دُ زړهٔ په وینو
به مدام قراروم زهٔ

لوی سوی احساس ـ نه
به په اوښکو سړوم زهٔ

پېښور (پېښور یونیورسټي)

۲۶ - ۱۱ - ۸۵





پوهه شوم دا ته وې چه مې خیال وته خلل شو
ما هومره هیر نهٔ کړے چه ته څومره بدل شوے

ما ویل د عمرونو د خوبونو مې تعبیر ـ ـ ـ ئ
خو ته وې بے وفا چه دیو بله په بل پل شو

نور دِ په یادونو کښې اوس هغه سرور نشته
اورم چه دِ لارے د اغیارو سره مل شوے

ما وئیل دا بے نۀ دہ دا بہ چرتہ غولیږی
خدا ئے خبر پہ څۀ م چہ نظر تہ چڼول شو

زما هم د وفا نامہ پہ خلہ چرہ یا مۀ شہ
تۀ چہ د وختونو پہ څیر ھسے رنګ بدل شوے

ستا چہ ارادہ د سفر نۀ وہ نو بیا ولے
ما تہ زما لارہ کښے تۀ ځنډم د منزل شوے

پېښور (زرعی یونیورسټی)
دسمبر ۱۹۸۹ء





دَ مابښام تورہ تیارہ چہ
لہ هَر لوری راخورہ شوہ

ماوے ښُکلے زما میشہ
بہ زما پہ انتظار دی
آ بہ لارہ زما ساری
زرۀ دَ هغې بہ ناقرار وی

څه خبر چه د ژوند لاره
ډله ما وسره بیلې کړسه
آلوظونه وعدې واړه
ډله زړهٔ وسره غمزوے

یو احساس وُوچه یم تاله
پټ ساتلے وو په زړهٔ کښې
خو ته لاړې بے وفا شوې
زما نهٔ شوې د بل چا شوې

آغه تاسره په څنګ
بے معنی واړه لحظې وې
ما ساتلے درله هسې
د مُودو را سے کیلې وې

(پېښور د زرعی یونیورسټي)
۲۵-۲-۸۶





خدایګو که ما سره یو ګام ځې
لرے رقیب سره د عام ځې

واخلئ دا هډوکی زما او سوزوئ
خو که زما ورته پیام ځې

ماله ئے نیټه د څنګ دن راکړے
غیرو له هر وخت په ناکام ځې

لابه زړه بند وي ګل د مینو پسې
اوس زړه بې واکه لاس په جام ځي

هغه چه سوری زړه په تیرو ولي
اوښکې زما پسې مدام ځي

ورک شم له ځانه ناخبره یمه
خوا کښې زما چه هغه ګلفام ځي

ورشه او وایه چه رقیب د بولي
ګوره بیا څنګ چه په هنګام ځي

وایم ماران دي ماله سته تري
چه زړه ستا زلفو ته قام ځي

پیښور
۱۹۸۲





ځه رایاد کړه هسې وایم
چه د ما سره وفا کړه

تمامی عمر د غیرو
د اغیار به د رضا کړه
که به ځه به چرې راغلې
نو د قصد به د شا کړه
د عقیدت به نامه هسې
به له مانه د حیا کړه
ښه ده ښه ده چه دې ګله
تمتریخنه په جفا کړه
اوس هغه وختونه لاړو
چه د ما د زړه پروا کړه.

اوس د عشق په ژبه وایه
اوس د عشق قصه در وایم
ستا په عشق کښې چه جوړ شوی
ټول دا غونډه به دربنایم
د وفا په ژبه څنګ به
د جفا خبرے ستا یم
څه اوس وړاندے به د سترګو
د زه نه یمه پناه یم
چه په ستا زړه خوشالیږی
زه خوشال یم چه جدا یم
زه به څله پښیمان یم
زه زړین په زړه صفا یم

پېښور (پېښور یونیورسټي)
دسمبر ۱۹۸۵ء





تا ویل د زړونو د مرهم قصه ده
دا خو د زړه شلونګی غم قصه ده

دا خلق څه وائی دا ژړا د څه ده
دا د چا بیا د صمدم قصه ده

بس کړی نور باس ے د وفا ونه کړی
ایله شوم پوه په د صنم قصه ده

مهٔ کوه ترس په غلط چه نهٔ شے
دا د سپینکو سترګو د نم قصّه ده

کیږه ریباره نن دِ تلونشته دے
هر وختِ ستا یو د څم څم قصّه ده

هائے آزېږ رخسار د یار مه ګرو
د زېړو ګلو د شرشم قصّه ده

نن م اسویلو داسے خوله کړه لیلی
په سرو ګلونو د شبنم قصّه ده

نهٔ ئے سرشته نه څه پښے زرینه
دا ته څه وائے څه مبهم قصه ده

پیښور
۱۹۶۹ء





چه د عشق اثر زیاتشی په هر لور شو
له ما لاړو د غرور په تمتو سور شو

هیڅ پاک نشته دا د عشق زور رواج دے
که زما په وفا ستا رانه زړه تور شو

ته قسم د مینې مهٔ خوره زهٔ خبر یم
چه د چا شوے ته د چا سره دِ کور شو

ساقي ستا په خُم کښې کم د چا په وار وو
خو زما قسمت ته گوره چه نسکور شو

بيا سلام شه چه ئې نوم په ژبه اخلم
مينه نهٔ وه ټول ژوندون راباندے اُور شو

نور دِ عشق دَ ذړن خيال ته څه ورکړي
په نغمو د هجر ژاړي کړي کور شو

( پياسے رملاکنډ )
۱۹۷۸ء





اوښکې رِم رواني د چشمانو وار په وار دي
ځائے په ځائے د عشق ويجاړے لارے دي

منم چه راته وکېږي مينه خپله زره لمن کښې
بيا هم زما سترگے تريو حده قصوروارے دي

څنګه هېڅ بے ميخه، مو د مينے دنيا ورانه شوه
وينم يو تربله، د رقيب چارے مکارے دي

څه له ځان د ښکلو په مخو پورے اوړم
ورځے ئے ليکلي په قسمت کښې زما خوارے دي

( پياسے رملاکنډ )
۱۹۷۷ء



دچپل ځانه وتې نۀ شم بند یوان یم
ځکه لرے ذۀ عالمه دَ جهان یم

دا آزار دخوارو بنکاری ، بلکه اور دے
داچه هسے رنګ ژړیږم په لړزان یم

دخندا آواز مې چغې شي په غوږ و
غم لړلے سودائي یم سرګردان یم



نۀ په لار د زمانے نه په وینا یم
سراسر دلته راغلے په تاوان یم

نه دعشق قصر ته ژاړم نۀ ئے اورم
چه په څپله یو قصه یم یو ارمان یم

دابهار او داخزان زما دَ ځۀ دی
هیڅ بے میڅه دا زکه هسے پریشان یم

پلڼے (ملاکنډ)
۱۹۷۸ء



بس دا چې د غه سره هم
هيچا ته ټيټيدې سنه

د وخت په کشالو کښې
دا پلنې هم ښښيدې سنه

خوږ اُور د خپله دړده
د ګُل چې پوهيږې نه



خفګان سکه د ګُل هم
په چا ظاهريدې سنه

د خوارو د بې وسو
په سترګو کښې لويږې نه

خوشبو ښې هر چا ته
له سترګو ئې لويدې نه

حسّاس سکه سيماب
احساس هم جميدې سنه

دردونه وې په ذره ګڼې
دا ټټې اوښکې کيږدې نه

پښلوئ
۲-۹-۸۵



زهٔ دښو دخوارانو اوښے نهٔ یم
زهٔ کفن په سَر د سوانو اوښے نهٔ یم

تهٔ دِ سپینه خولګۍ بل چاته په خله که
زهٔ لادومره د لېبانو اوښے نهٔ یم

له هرڅه اول په ځان زما ایمان دے
زهٔ دچا د همدردیانو اوښے نهٔ یم



په ژړا په انګولا دِ هزار تیر شی
زهٔ دڅوند دګیډیانو اوښے نهٔ یم

ذر لعنته په هم زهٔ په هغے فقیر شم
زهٔ دسوال داښزانو اوښے نهٔ یم

تهٔ مطلب ترے دغه مهٔ اخله که خندیږم
زهٔ دشرنګ دګنګروکانو اوښے نهٔ یم

مُلا وایه، وایه وایه، دجنت قصه تمام که
خودا واوره دغلمانو اوښے نهٔ یم

پېښور (پېښور یونیورسټی)
۱۹۸۳ ع





چه را جمع زړه په زړهٔ د دنیا غم شی
را روان زړه د دے برغو سترګو نم شی

بس یو غم په دے جهان زړه د غم نشته
څهٔ دیار څه د دنیا شی بلا غم شی

نشته څوک چه زړه د خوږ زړګی مرهم شی
چه دا درد زړه د خوږ زړګی لږ کم شی



چه دا غوښے دی وبل خوری دغه رونړه
نو دا حال به د دنیا وایه څنګ سم شی

دغه ځان زما قربان شه پروا نشته
خو چه درد د زمانے لږه مرهم شی

بلا هیڅ رو زړهٔ د جهان د سمی نهٔ وینم
خو چه وران شی همه مله به دا سم شی

آخر ان وی په هر کار نښه د خدائے وے
هر عالم چه او بښتم عقل ئے جم شی



زۀ په لار د دنیا نه تلم په صحرا شوم
آخر تنګ شوم له بیا بانه په سودا شوم

هیڅ اعتبار زما خلوص ته چا ورنۀ کړو
پښتانه د جهان هسې رسوا شوم

هماغې جهان م هسې په ځان تنګ کړو
سودائي هسې د دین نه د دنیا شوم



په ژړا م له ازله سترګې سرې دی
په ژړا ئې کړم چه مې چا سره آشنا شوم

تل په خله باندې ئې یو په زړۀ ئې بله
زۀ چه چا وته نژدې شوم لاجدا شوم

تل په اور دسر انګار د زلفو خوب دے
له دے خوب ځنې وښیم ځم عنقا شوم

پلئ (ملاکنډ)
۱۹۷۸ء



دا خپیرے کریوان زما دچا دلاسه دے
دا عمر په بیابان زما د چا دلاسه دے

سترگے شوے لیچنے زما دو اړه په ژړا
خو دا رنگِ خفگان زما دچا دلاسه دے

هرچا له غیږه ورکړه دے گلونو دسپرلی
نیمگړے هرارمان زما دچا دلاسه دے

کوره زمانے ته چه یوه هم زمانه اوری
ظلم په خپل ځان زما دچا دلاسه دے

(پیښور)
۱۹۸۱ء





دغه ځان مې په مثال دکه دَ نمر وے
په خپل وس مې خپل حدونه مقرر وے

په هیڅ حال کښے دچا متازی نهٔ وے
نه چه دا تندے زما دچاپه در وے

دَخپل ځاۤ په سرور غرق ځان له مشغول وے
له جهانه یک تنها په لرو بر وے

دغه ساه د وخت زما په سینه "مان" وے
نه چه وخت زما د دست ځنځیر وے

دے تور اوربل د ول ځنے آزاد وے
د مرخوار پرهر زما د زړهٔ پرهر وے

ستا دیو ساعت کاته د عمر غم شی
زما غم ځما ژړا ماله اختر وے

ستا د غم قصه مِ نهٔ ورے کورستان ته
یا د سُرو ګلو د باغه ناخبر وے

یو د هجر غم زما په اوږو نهٔ وے
بیا دِ غم د درست جهان زما په سر وے

پېښور
۵ — ۲ — ۸۴





تا چه لاس د وفا راکړو هغه وخت
ما ته زړهٔ ویل آشنا غلا که اعتبار کښے

داسے سینه ده چه په سَرد سولئ سوریم
چه هیڅ فرق زمانهٔ وو په رازدار کښے

یار دِ کړځئ رقیب ځنګ کښے پروا نشته
زهٔ به ښبنم د زړګی وینے په خمار کښے

چله منډ درمنه په نورڅه آشنا نهٔ يم
خو پابند نه ئې په خپل قول وقرار کښې

دا رقيب م ن ساتر راته ښکاره شو
چه آشنا عالمه پرېښوم په لويه لار کښې

دومره زړهٔ څوکئ په څنګه له ما اوشي
چه ئې تونډ دے هم ملګرو په انکار کښې

ما خو لاړه د لويه غروره راتيوله
څنګ داخل شومه دا زړهٔ ديار ديار کښې



دا د خوښې انحصار په خپل خواهش دے
ګني څوک به لاخفه شي په بهار کښې

تا خو وئيل چه زهٔ عاشق زدينه نهٔ يم
آغه غلا دِ تن ښکاره شوه په اشعار کښې



—*—